# د خوشحال خان خټک زنداني قصيدې

نگينه خانم نگين*
نور البصر امن**

## Abstract

Khushal Khan Khattak is considered to be the pioneer of creating almost all standard genres in the history of Pashto literature. Alongside various other genres, the credit of creating the so-called "Prison Literature" also goes to him. It is that type of literature which represents the "Wave of the poet's or author emotions behind bars jotted down via the pen onto the paper".

Although Khushal Bābā has cr*eated a lot of prison literature in both prose & verse. In this paper, not only such "qaṣā'id" of Khushal Bābā have been pinpointed that he has written in the Mughal prison but also their historical background, explanation of the underlying facts & the art & technique of "qaṣīdah" have been given a touch in the light of research.

قصيدې لرم غرا له هره بابه
په حکمت په نصيحت کښې مالامال
په تعريف د دلبرانو غزلونه
په صفت د سترگو وروځو زلفو خال [1]

قصيده د ادب د نظم په څانگه کښې يو اهم صنف دے چې د خپل مهم منظوم نوعيت له مخه ډېر وسعت، فصاحت، بلاغت او معنويت له ئې په خپله لمن کښې ځائې ورکړې دے.

"قصيده د شعر يو ارت بيرت او خور قسم دے چې اوورډهٔ اوورډهٔ مضامين پکښې بيانولې شي. په هره ژبه کښې د قصيدې د اشعارو شمېر جدا دے. په عربۍ کښې لس بېته نه په پورته ټولو ته قصيده وئېلې شي."[2]

---

* ليکچرار، پي ايچ ډي ريسرچ سکالر ،پښتو څانگه، پېښور پوهنتون
** پي ايچ ډي ريسرچ سکالر، پښتو څانگه، پېښور پوهنتون

پوهانو چې د قصیدې کوم لغوي او اصطلاحي تعریفونه کړي دے هغه تقریباً ټول نزدې نزدې یو معنیٰ[1] او مفهوم لري.
اردو پښتو لغت کښې د قصیدې تعریف داسې شوې دے.

" اراده یا نیت کول هغه شعرونه چې پکښې د چا صفت او مدح شوې وي. هغه نظم چې پکښې د چا صفت یا غندنه شوې وي. یا د سپرلي یا د بل قدرتي منظر صفت شوې وي. یا پکښې د زمانې د لاسه تکالیف بیان شوې وي. د داسې نظم د وړومبي شعر دواړه مصرعې هم قافیه وې او بیا ئې د هر شعر دویمه مصرعه هم قافیه وي."[3]

قصیده د عربۍ ژبې ټکے دے چې د قصد د مصدر نه وتې دے. په قصیده کښې شاعر په یوه خاصه او انتخاب کړې شوې موضوع د اشعارو وئیلو قصد او اراده کوي نو په دې بنیاد ورته قصیده وئیلې شي. په عمومي ډول د قصیدې روایت او تاریخ داسې راغلے دے چې قصیده د چا صفت او ستائینې د پاره وئیلې شوې ده، خو هر کله کۀ د ستائینې په دغه رنګ کښې د چا غندنه هم شوې ده نو د غندنې دغه اشعارو ته کۀ چرته په فني لحاظ او جوړښت د قصیدې رنګ لري په هجویه قصیده بللے شي. د ونو ښاخ تراشۍ سمبالولو او ښائسته کولو والا ته مقصد الاشجار وئیلې شي. دغه شان هغه شاعر ته چې هغه د منتخب الفاظ او معاني په داسې طریقه راغونډ کړي مقصد تقصید وئیلے شي."[4]

د مشرق په ډیرو ژبو کښې قصیده د فن او فکر په لحاظ ډیره د معیار لیکلې شوې ده، عربو په دې میدان کښې ښۀ طبع آزمائي کړې ده او فارسیبانو قصیدې له درباري حیثیت ورکړے دے.

په پښتو کښې لکه څنګه چې دا خبره هر چا ته معلومه ده، خوشحال خان خټک د قلم سره سره د توري هم مړنې وۀ. هغوي خپل ټول ژوند د پښتنو د خوشحالۍ، سوکالۍ او پښتون قام د آزادۍ او د خوي خصلت یو ځوان مرد، میړنې او ننګیالي په اوصافو ښائسته کولو د پاره وقف کړې وو. د خپل دغې عزم او جهدِ مسلسل په لار کښې ئې ډیرې سختې ورځې شپې، د قید و بند سخت او ګران ژوند او د جنګ و جدل خنډونه زغملي دي. د خوشحال بابا د شخړو نه ډک ژوند د هغۀ په تخلیق شوي ادب کښې خور ور پروت دے.

هسې خو خوشحال بابا د مغلو په قید کښې ډیر "سجنیه ادب" تخلیق کړے دے خو چې د خپل قید و بند په باب له ئې کومې قصیدې لیکلے دي هغه د خپل وخت د سیاسي حالاتو او د خوشحال بابا د شخصیت یو اهم دستاویز دے. خوشحال بابا په دغه "سجنیه قصیدو" کښې د لوړ فکر او فن سره سره د زندان حالات هم بیان کړي دي. په پښتو ادب کښې دغه قصیدې د خپل تاریخي حیثیت له رویه ډیر ارزښت لري.

"قید کے ایام میں خوشحال خان نے متعدد غزلیات، قصائد اور قطعات وغیرہ لکھے جو قید و بند اور غریب الوطنی کے مصائب وآلام اور حالات اور وطن عزیز اور اقارب واحباب کی یاد اور فراق میں پر سوز اور درد ناک نالہ وفغاں پر مشتمل اور شاعر کی مظلومیت اور بے گناہی کے آئینہ دار ہیں۔"[5]

ترجمه: د قېد په ورځو کښې خوشحال خان يو شمېر غزلې، قصيدې او قطعې وغېره ليکلي دي چې د قيد و بند او مسافرۍ د مصيبتونو، حالاتو او د خپل خوږ وطن، د خپلو خپلوانو په ياد او جدائۍ کښې په زړۀ سوزونکې نغمو مشتمل دي. او د شاعر د مظلوميت او بې ګناهۍ عکاسي کوي.

د سن ۱۰۷۲ھ په آخر کښې چې اورنګزيب د مهابت خان په ځائې سيد امير خان خوافي د کابل صوبېدار کړو نو سيد امير خان محسوسه کړه چې خوشحال بابا په دې علاقه يو مخه ورېز شخصيت دے او په بعضې کارونو کښې خنډ دے، د دې خنډ د لرې کولو د پاره سيد امير خان خوافي سازشونه شروع کړل چې د خوشحال بابا په ګرفتارۍ ختم شول[6]. اولنې سازش ئې د خوشحال بابا د ترونو سره وکړو چې هغوي له ئې د منصب او دولت لالچ ورکړو. په دغه سازش کښې چې د خوشحال بابا کوم ترونه شامل وو د هغوي خوشحال بابا داسې ذکر کړې دې.

واړه ترونه مې نا اهله
ابو جهل بو لهب شول
زۀ ئې بند کړم په مغلو
په خانۍ او په منصب شول[7]

"مقصد بهادر خان او فيروز خان دي. بهادر خان د خوشحال بابا سکه ترۀ او فيروز خان ئې ناسکه ترۀ وۀ چې د سيد امير خوافي سره د خوشحال خان خټک د ګرفتارۍ په سازش کښې شامل وو."[8]

خو د سيد امير خوافي سازش دغه ځائې عملي شکل اختيار کړو چې د پېښور نائب الحکومت مرزا عبدالرحيم صوبه دار له دا مشوره ورکړه چې تر څو يو څو غټ زميداران ګرفتار نۀ کړے شي تر هغې د دۀ د صوبېدارۍ رعب په خلقو نۀ شي قائمېدے چې په دغه څوکسانو کښې خوشحال هم يو خود سره سړے دے. سيد امير خان خوافي د اورنګزيب د طرف نه د راهدارۍ د معافۍ د حکم د عملي کولو په سلسله کښې د بادشاه نه چې کوم د زبردستۍ حکم اخستې وو د هغې اصل مقصد هم د خوشحال بابا ګرفتاري وه. په دې سلسله کښې افضل خان خټک ليکي........

"مطلب د امیر خان دا وۀ چې کۀ یو لوئې سړې په قېد کړم چې نور پرې ویروم چې راهداري منع کړم او کۀ نه په بل رنګ به منع شي. او پښتانۀ به دا کار او نۀ مني، بادشاه لره روان شۀ. خان علین مکان هم ورسره روان شۀ. ډېر کارونه ئې ابتر وو. تر اټک چې هور ته شۀ. خان علین مکان ئې را اوجار یوست. ترونه ئې ورسره بوتلل. بادشاه لره چې ورغے، بادشاه ورته ووې چې راهداري دې منع کړې ده. ورته ئې التماس وکړ چې راهداري هسې نۀ منع کیږي څو د زبردستۍ عمل ونۀ کړم. بادشاه ورته ووې چې ته ولې د زبردستۍ عمل نۀ کوې. وې وئیل په دا سبب چې دې تا عمده زمیندار دي. بې دې تا د حکمه په هغو زبردستي کولې نه شم. بادشاه ورته ووئیل چې ما حکم درکړې دے. هر طور چې دې تا کار کیږي هسې کوه. په دا شان مبهم غرض ئې وکړ ځواب ئې بیا موند. د دۀ هم په ځان کښې سترګې پټې وې. ترونو ئې هم پنځوس زره روپۍ د شمشېر خان په ضامنۍ قبول کړې وے. د دۀ د قېد برغ ئې سره کړې وۀ. خو چې پېښور لره راغے دې چې وبالۀ، قېد ئې کړ."[9]

په وسط د څلورمې خور په بند شوم　　　په رجب د بل کال اوختم په کړې
په پینځم د ذوالقعدې له کړې کوز شوم　　　دوه کالونه پینځه میاشتې شي د تړې
ښۀ تاریخ د استخلاص رالره راغے　　　"لاړ په کوزه د سېد میر د مور لېږې[10]

دوست محمد خان کامل مومند چې د خوشحال بابا کوم دیوان تدوین کړې دے د هغې مطابق خوشحال بابا ټولې اتۀ پنځوس[11] قصیدې لیکلې دي چې په دغه دیوان کښې د مخ نمبر ۴۹۸ نه تر مخ نمبر ۶۳۰ پورې په یو سل او دوه دېرش مخونو مشتمل دي. په دغه قصیدو کښې د هر نوعیت او مضمون قصیدې شته دے چې خوشحال بابا پکښې د خپل وخت او ژوند حالات ښۀ په ډاګه بیان کړے دي. په دغه قصیدو کښې څلور قصیدې داسې دي چې خوشحال بابا د جېل په دوران کښې لیکلې دي، په دغه څلورو زنداني قصیدو کښې اولنۍ قصیده دا ده.

زمانې له ښو یارانو نه مهجور کړم　　　څۀ بلا دې مبتلا په ډېر ضرور کړم
د ښو اوښکې مې پاسه پرې تارونه　　　بیلتانۀ په تن په مثل د طنبور کړم
اوس په ما د خوشحالۍ نوم جوړ نۀ دے　　　چې دا هسې زمانې له غمه پور کړم
ما وې ترق به سره وچوم له غمونو　　　ولې لا تر اوسه پایم خدائې صبور کړم
نوره واړه پښتونخوا په ځائې میشته ده　　　خو یو زۀ دې زمانې پکښې منصور کړم
اشرف خان په ناپوهۍ په غم کښې ونښت　　　زۀ د دۀ غمونو لا په زړۀ رنځور کړم
جدائي د صدر خان لکه سور اور ؤو　　　کۀ د واړو فرزندانو غم چور چور کړم

سل تپاکې مې هر آه سره په زړه شي — په درون ئې لکه وریې د انګور کړم
هغه وخت مګر د خدائې په وعده راشي — چې به بیا د خپلخانې سره سرور کړم
د هر مخ خالونه داغ ځما د زړۀ دے — زۀ حیران ئې یادول په کوم دستور کړم
دا ارمان مې هیڅ ارمان سره سم نۀ دے — کۀ په زړۀ کښې ارمانونه نامحصور کړم
مرګه هومره مهلت راکړه په جهان کښې — چه جمدر د مدعي په وینو سور کړم
چې مې اوس له لاسه اووتې اسمان شوے — د هغو خبرو څۀ لره مذکور کړم
کۀ ئې درست د مټو زور راته ښکاره کړو — بیا فلک سره کشتې په خپل دستور کړم
نۀ به بیا په غاړه کښېږدم د ننګ توره — نۀ به بیا په قوم کښې کښېنم نۀ به هور کړم
عجب مار مې جار وتلې تر دؤو پښو دے — مګر لوئې پاړو پیدا شي چې ئې دور کړم
مست هاتیان خوني مزري په زنځیر کېږي — بویه دا چې ځان فلک ورته تربور کړم
په خپل آه مې باور شته اثر به وکا — رقیبان به اور لړوني د تنور کړم
یو دوه سرې مار مې پروت په دواړو پښو دے — په دیدن ئې له نشاطه نه نفو کړم
پاړوګان د پیښور واړه ناقص ؤو — دا یم هند لره روان شوم کۀ ئې دور کړم
چې مې فکر د ازل په تورې وشي — په دا کار کښې خپل پردي واړه معذور کړم
دا بیان مې د غعد[12] په کال وئیلے — په شعبان چې د لاهور په سیند عبور کړم
واړه خلق د خوشحال په پت ولاړ دي — بخته تا له کومه لوریه را حضور کړم[13]

په درېویشت[14] بیتونو مشتمل په دې سجنیه قصیده کښې کۀ یو خوا خوشحال بابا د زمانې نه ګیله مند دے نو بل خوا د خپلو ښو یارانو، خپلخانې او ځامنو په جدای ئې خفګان هم ښکاره کړے دے. د دې قصیدې د مقطعې نه مخکښې شعر کښې چې د "غعد" ماده او د شعبان میاشت ذکر شوې ده چې په ابجدي حساب شعبان ۱۰۷۴ هـ جوړېږي.

"لکه چې د تاریخي مادې له شعره څرګنده ده، دا قصیده خوشحال بابا هغه وخت لیکلې ده چې دې ئې بندي هند ته روان کړے وۀ. او د لاهور په سیند پورې وتۀ ځکه چې د خپلې خپلخانې سره د بیا ملاقات ارمان کوي."[15]

په دې قصیده کښې یوه ښکاره خبره دا هم ده چې خوشحال بابا د خپل غلیم مدعي په زنځیرونو کښې بندیوان دے خو نه صرف د خپل عزم حوصلې د ننګ او پت څرګندونه ئې کړې ده بلکې د خدایه دومره مهلت غواړي

چې د خپلې ترېې تورې تنده د خپل مدعي په وینو ماته کړي. بله دا چې د خپل زوي اشرف خان هجري په ګرفتارۍ سخت غمژن دے.

"ډېلي ته د خوشحال خان خټک د رسېدلو نه پس د خدا یار خلیل او جګرام وغېره په لمسه د خوشحال خان د مصلحت او صلاح مشورې نه بغېر هجري دغه وخت د کابل صوبېدار سید امیر خان خوافي له کابل ته ورغلو او بیا څهٔ موده پس هغه هجري هم ګرفتار کړو."[16]

د خوشحال بابا دویمه زنداني قصیده دا ده[17].

هغه خدائې چې بندي کړې دے خوشحال

هم هغه به ئې خلاصې کا په هر حال

دا قصیده په درې نوي بېتونو مشتمل ده چې د مقطعې د شعر نه ئې د وئېلو کال او میاشت معلومېږي.

زر پینځهٔ اویا کلونه د هجرت وو

په آغاز د نوي کال شو دا مقال

د دې شعر په حساب خوشحال بابا دا قصیده د محرم د میاشتې په کال یو زر پینځهٔ اویا کښې وئیلې ده چې په دغه وخت کښې خوشحال بابا د رنهتمبور په قلعه کښې قېد وهٔ.

د دې قصیدې د اولني شعر نه د خوشحال بابا په خدائې پاک د پوخ یقین او پخې عقیدې ثبوت برېښي چې زهٔ په بند کښې د الله د طرفه بندي شوې یم او هغه به زما د خلاصې بندوبست کوي زهٔ د بند نه د خلاصې د پاره د چا منت بار جوړېدل نه غواړم.[18]

"په دې قصیده کښې خان بابا د خپل قېد و بند صعوبتونو او د رهائۍ د هغه امید و بیم تذکره کړې ده چې د هغهٔ په ذهن او زړهٔ کښې وه، او دغه وخت هغه په یو عجیبه کشمکش کښې مبتلا وهٔ لکه انسان چې د مرګ او ژوند په برید ولاړ وي. دې کښې د یوسفزیو (چې پلار نیکهٔ ئې د مغلو د پاره وهلې وو. او لکه چې په لاندینو شعرونو کښې ئې ورته واضحه اشاره هم کړې ده) ستائېنه په دا رنګ کوي."[19]

کهٔ د سمې کهٔ د غرهٔ دي یوسفزي

همګي مزري دي مهٔ ئې وې زوال

ما د دوي سره د ننګ پالنه ښهٔ زده

کهٔ مو عمر سره تېر دے په قتال[20]

د دې نه علاوه د ننګ ناموس ذکر، غور یا خپلو ته کتڅل، د ښهٔ بد، ښائسته او بد رنګ مماثلت د هنر مند او بې هنره فرق، د یوسف(علیه السلام)، بخت نصر او حجاج تلمیحات، د اورنګزیب ظلم، د سید میر او میر بابا غندنه، د میر جمله د زوي محمد امین خان، میر بخشي، میر خان او خلیل خان ستائینه هم کړې ده. د مغلو د بې وفایۍ او د خپلې بې ګناهۍ ذکر ئې هم څۀ داسې کړے دے.

ما وې زۀ به د مغل په نوکرۍ کښې
رکیبونه کړم د سرو د سپینو نال
په ناحق ئې زنځیرونه راپه پښو کړل
واه واه هسې نوازش هسې آمال[21]

د خپلې رهایۍ او خلاصي د خپل اهل و عیال د واړه خټکو د خوشحالۍ او د یارانو د ملاقات تصوراتي نقشه په دې ډول پیش کوي.

لا به کله د خلاصۍ زیرې وشي
چې ښادي مې شي په اهل و په عیال
انتظار د دې خبرې ډیر عالم کا
ولې خوار خټک به واړه شي نهال[22]

د خوشحال بابا دریمه زنداني قصیده په اوویشتو بیتونو مشتمل ده. د قصیدې په شعرونو کښې خو ئې واضحه نیټه په نظر نۀ راځي خو په اولني دوه شعرونو کښې چې ئې د باز، باقي او سعادت خان د جدائۍ کوم زغم کړے دے هغه داسې بیانوي.

راته درست د دهلي ښار وو بوستان
چې پکښې وو باز، باقي، سعادت خان
په هغه زمان چې دوي له ما روان شول
بلا سخت یم چې ئې نۀ مرم په هجران
چې د دوي له دیدنه نه محروم شوم
کۀ رښتیا وایم زۀ اوس شوم په زندان
خپلخانه مې لکه باغ زۀ ئې باغوان وم
څۀ عجب وبله جوړ ؤو باغ باغوان
زما نه چې باغ باغوان و بله بیل کا
دا بیلتون په دواړه توکه دے خریزان
چې یو ګل د هغه باغ وینې په سترګو
په باغوان باندې ښادي وي هر زمان
د مجنون څهره تصویر په کاغذ کوره
زۀ هم هسې هډو پوست یم استخوان
په جهان کښې هر څوک یو ځله په مرګ مري
زۀ بې مرګ مرم نۀ یو ځل زمان زمان

په ناحق د اورنګزيب په بند بندي يم    خدائې خبر دے په تهمت او په بهتان
زۀ په ځان کښې ګناه نۀ وينم په خدائيګو    ولې نور خلق خبر کا شان شان
د ګناه مې سر رشته نۀ ده معلومه    مګر خپل هنر د ځان وينم تاوان
لکه زۀ وم په راستۍ په درستۍ کښې    د مغل په خدمت نۀ ؤو بل افغان
بادشاهانو لره ترس د زړۀ بايده دے    مروت، غوررسي، عدل و احسان
څوک به چا لره په داد او په فرياد ځي    چې په ظلم راضي من شول بادشاهان
چې ځما په خېلخانه په اولس وشول    و دې نۀ شي په هندو په مسلمان
چې د خپل پردي تميز ورباندې ورک شو    بادشاهان د خپل دولت کاندي نقصان
اورنګ شاه بادشاه کۀ تل کا هسې چارے    لکه اوس ئې په لاس ونيوې امان
يا سرې کال يا په بل کال به خلق واؤري    چې جويونه شي د سرو وينو وران
زۀ لا څۀ يم نور به هم ځما په رنګ کا    څو خانان دي نوم په نوم د کوهستان
چې زړۀ سوې په پلار په ځويه باندې نۀ کا    د هغۀ به څۀ صرفه وي په جهان
له غروره هسې مست بې خوده لاړ دے    چې نظر ئې هورې پاس دے په آسمان
د داد خواه ځواب لاتېې يا کوتک دے    په دربار چې ئې غوغا کا داد خواهان
وبه نۀ وائې چې ولې دا دې څۀ کړل    کۀ په ملک ئې قتل عام کاندي خانان
نۀ يو حرف د صوبه دار نه شل محضره    چې رقوم ئې په خپل مهر کا قاضيان
رفتګي بدې رشوت حمايت بويه    کۀ څوک غواړي د خپل کار سر و سامان
د هر چا څخه چې دا خويونه نۀ وي    په دربار کښې به سرګشته ګرځي حيران
طبيبانو ته هيڅ مۀ وايه خوشحاله    قادر خدائې به وکا ستا د درد درمان[23]

د خوشحال بابا دهلي ته د رسېدو نه مخکښې د خوشحال بابا ورور مير باز خان، تربور باقي خان او زوئې سعادت خان دهلي ته رسېدلې وو او د خوشحال بابا دوست محمد آمين خان ته ئې د خوشحال بابا د ګرفتارۍ قيصه او د آزادولو سفارش د پاره وبنا کړې وه.

محمد آمین خان بادشاه ته د خوشحال بابا د خلاصي سفارش اوکړو. مخکښې د دې نه چې خوشحال بابا رها کړي بادشاه ته د امیر خوافي د طرفه نه دا پيغام ورغې چې د خوشحال بابا رهائي به د فساد باعث جوړ شي، په دې وجه خوشحال دې رها نهٔ کړې شي.

"ادھر محمد امین نے خوشحال خان کی رہائی کے لیے اپنی کوششوں کو جاری رکھا اور ایک بار پھر میر خان میر میران کی کفالت سے شہنشاہ کے حضور خوشحال خان کی سفارش کی لیکن کامیابی نہ ہوئی۔ شہنشاہ نے کہا کہ اگر خوشحال خان زن و بچہ کو بطور یرغمال ہندوستان لے آئے تو اسے چھوڑ دیا جائے گا اور اسی قسم کا ایک فرمان سید امیر خان خوافی کو بھی بھیجا گیا۔ میر باز خان، باقی خان اور سعادت خان نے جو ابھی تک دہلی میں تھے اس حکم سے آگاہی پا کر خوشحال خان کو اس سے مطلع کیا اور پھر خوشحال خان کی ہدایت کے مطابق ماہ صفر ۱۰۷۵ھ (مطابق اواخر آگست ۱۶۶۴ء) یعنی سابقہ سن عیسوی ہی میں وطن روانہ ہوئے تا کہ اس امر کا انتظام کیا جائے کہ شہنشاہ کے حکم پر عمل نہ ہونے پائے۔"[24]

ترجمه: محمد امین خان د خوشحال خان د خلاصي د پاره کوششونه کول او یو ځل بیا ئې د میر خان میر میران په واسطه بادشاه ته سفارش وکړو خو کامیاب نهٔ شو. بادشاه ورته ووئېل کهٔ خوشحال خان خپله اهل خانه د یرغمال په طور هندوستان ته راولي نو دې به آزاد کړې شي[25]، او دغه شان یو فرمان ئې سید امیر خان خوافي ته هم واستوهٔ. میر باز خان، باقي خان او سعادت خان چې تر اوسه پورې په دهلي کښې وو د دې حکم نه چې خبر شو نو خوشحال خان ئې خبر کړو او بیا د خوشحال خان په وینا د صفرې په میاشت ۱۰۷۵ھ (مطابق آواخر آگست ۱۶۶۴ء) یعنې په مخکښې عیسوي کال کښې وطن ته روان شو چې د خوشحال بابا د هدایاتو مطابق د خپلې خپلخانې انتظام وکړي چې د بادشاه په حکم عمل ونهٔ کړې شي.

د مؤخر الذکر قصيدې اولني شعرونه د دې تاریخي واقعیاتو عکاسي کوي چې کله د خوشحال بابا نه د خپل کور خلق د دهلي نه راغلل نو د هغوي د جدائۍ غم ډېر زیات غمژن کړے دے. د دې واقعیه په تناظر کښې د دې قصيدې د لیکلو وخت تقریباً ربیع الثاني ۱۰۷۵ھ ټاکلې شو، ځکه چې دغه کسان به تقریباً په دوه دوه نیمې میاشتو کښې دهلي نه سرائې اکوړې ته راواپس شوې وي. په دې قصيده کښې د خپلې بې ګناه بندیوان کېدو ذکر داسې کوي.

په ناحق د اورنګزیب په بند بندي یم
خدائے خبر دې په تهمت او په بهتان
زهٔ په ځان کښې ګناه نهٔ وینم په خدائیګو
ولې نور خلق خبرې کا شان شان
د ګناه مې سر رشته نهٔ ده معلومه
مګر خپل هنر د ځان وینم تاوان[26]

د اورنګزیب بادشاه د ظلم و ستم، ناانصافۍ او د هغهٔ په دربار کښې چې د سفارش، بډو او رشوت کوم دور چلېدو د هغې نقشه ئې هم په دې قصیده کښې راښکلې ده چې د ظلم ئې دا حال دے چې خپل پلار، ورور او زوي باندې هم د پیسې او اقتدار د پاره ایله نهٔ کوي.

د خوشحال بابا د قېد و بند څلورمه قصیده هغوي په دهلي کښې د نظر بندۍ په حالت کښې هغه وخت ولیکله چې کله د اس نه راپرېوتو او زخمي شو.

چې بهتر تر هر نعمت دے کهٔ نعمت دے روغ صورت دے
چې ئې دا نعمت روزي دے سر تر پایه عنایت دے
کهٔ ئې پېژني تهٔ قدر روغ صورت لوئې نعمت دے
ستا د کوښې ځان یوازے تر جهانه زیات قیمت دے
کهٔ دې ځان نهٔ وي جهان وي په عدم ئې اشارت دے
دا جهان لکه معنیٰ شو ستا وجود ئې عبارت دے
چې په ځائې ئې عبارت وي د معنو هومره قوت دے
د صورت د خوشحالی مدار واړه په صحت دے
چې صحت د صورت نهٔ وي ورته خس مال و دولت دے
رنځ په کور کښې هم بلا وي لا څهٔ نور څهٔ په غربت دے
آس چې رو درومي په لارے پرېوتهٔ ځنې آفت دے
پښه مې هسې رنګ په درد شوه چې تېرېږي یو ساعت دے

| | |
|---|---|
| چې د سر بلا په پښو شوه | دا لا خېر خېریت دے |
| په دا هم شکر بائدهٔ دے | یو بتر تر بل زحمت دے |
| ما وې تېر شو ولې پوه شوم | لا څهٔ پاتې مصیبت دے |
| ما وې اوس خو مهربان شو | لا ئې ما سره شدت دے |
| هند په ما باندې دوزخ شو | کهٔ په نور عالم جنت دے |
| بندیوان ورلره راغلم | دا یو څو میاشتې فرصت دے |
| هغه شان لکه بندي وم | ترې مې لا بتر محنت دے |
| هره ورځ ورتلهٔ دربار ته | ګوره دا څه مشقت دے |
| د بل حکم پرې زندان شي | چې په خپل حکم عادت دے |
| نهٔ شیرین خوارهٔ یاران شته | نهٔ د چا سره صحبت دے |
| نهٔ خپل ورکړل رانیول شته | نهٔ خپل حکم حکومت دے |
| نهٔ د ښکار هوا هوس شته | نهٔ د نورو مصلحت دے |
| یو په بل پوښتنه نهٔ کا | هسې ښهر بدخصلت دے |
| په شمار یو څو سړي دي | چې ئې جوړ راسره نیت دے |
| یو اکبر په غم شریک ؤو | هغه هم په خپل عشرت دے |
| کهٔ بادشاه دے کهٔ خانان دي | راښکاره ئې حال حالت دے |
| د هیچا برکت نشته | ځان ځاني شوه قیامت دے |
| ما چې دا قصیده ووے | په دهلي مې اقامت دے |
| څلورمه د رجب وه | زر اوهٔ اویا هجرت دے |
| نور څهٔ مهٔ وایه خوشحاله | کهٔ څهٔ وائې قباحت دے[27] |

په دې قصیده کښې خوشحال بابا د روغ صورت د نعمت ذکر، هره ورځ دربار ته د حاضرۍ او تلو راتلو ذکر، د خوږو یارانو د صحبت ارمان، د ښکار خواهش، د دهلي د ښار د ځانځانۍ غندنه او د خپل یو دوست اکبر

نوم ئې هم یاد کړے دے چې اول زما په غم شریك وۀ او اوس په خپل عېش و عشرت کښې اخته دے. په آخري شعرونو کښې د دهلي د قیام ذکر او د دې قصیدې د لیکلو نېټه بیان کړې ده.

"دغه پورتنۍ قصیده دا راښائي چې خوشحال بابا د دهلي د نظر بندۍ دوران کښې د رجب (زبرګه) د میاشتې په څلورم تاریخ ۱۰۷۷ھ کښې وئیلې ده. په دې قصیده کښې دراصل خان بابا د خپل ژوند یوه واقعیه بیان کړې ده او هغه دا چې په دغه میاشت او کال رجب ۱۰۷۷ھ/ دسمبر ۱۶۶۶ء هغه (خان بابا) د اس نه راپرېوتې وۀ او پښه ئې خوږه شوې وه."[28]

د دې واقعې او قصیدې ذکر دوست محمد خان کامل هم کړے دے.

" د قید نه پس په هندوستان کښې چې خان نظر بند وۀ نو په هغه ورځو شپو کښې په ړومبي تاریخ د رجب ۱۰۷۷ھ په دهلي کښې په اس سور تلو چې راپرېوتلو او پښه ئې خوږه شوه. په هغه موقع ئې څلور ورځې پس دا قصیده اوې."[29]

د دغه کال (۱۰۷۴ھ ق/ ۱۶۶۴ء) ذکر خوشحال بابا په یوه بله قصیده کښې هم کړې دې چې مطلع ئې دا رنګ ده.

د خدائې منت راباندې چې ئې هست کړم له عدمه
بل خلقت ئې نۀ کړم راپیدا شوم له عدمه[30]

او په دې بیت کښې د خپلې ګرفتارۍ ذکر داسې کوي.

زۀ چې د غعد په کال بندي د اورنګزیب شوم
کور او خېلخانه مې پکښې ډېره وه له دمه[31]

اګر چې په دغه قصیده کښې د قېد و بند د کال ذکر شوې دے او خوشحال بابا په دغه کال بندي هم وو. خو دا قصیده هغوي د بند نه وروستو لیکلې ده. د "غعد" د ذکر نه پس چې کوم شعر دے هغه داسې دے.

څو کاله بندي کړم اورنګزیب په هندوستان کښې
روغ راغلم تر کوره بیا ئې خلاص شوم له ستمه[32]

د دې شعر نه ښکاره ده چې خوشحال بابا د اورنګزیب د جور و ستم نه خلاص شو او کور ته راغے نو دا قصیده ئې اولیکله.

د دې قصیدې په حاشیه کښې کامل صیب اول لیکلې دي چې

"دا قصیده د ۱۰۸۴ھ تصنیف ده"[33].

خو د دې شعر په حاشیه کښې لیکي چې

دیرش کلونه وشول چې مې پلار دے شهید شوے
مړ کړ یوسف زیو ما هم اور کړه باندې سمه[34]

"شهباز خان په ۱۰۵۰ھ کښې وفات شوې دے نو دې شعر نه دا اندازه کولې شو چې دا قصیده په ۱۰۸۰ھ کښې لیکلې شوې ده."[35]

او دا نیټه قیاس ته نزدې ده.

محمد آصف صمیم د دې مقطعې قیاس هم په مخې ذکر کړې شوې تاریخ یعنې ۱۰۷۴ء/ شعبان (۱۶۶۵ء/ اپریل) کړې دے.

"او دا قصیده ئې هم دغه وخت وویله چې مقطع ئې دا ده.

ما خوشحال په خوب دا حال لیدلې نۀ وۀ
چې به دا د غم بیتونه په پنجاب کښم"[36]

خو همیش خلیل د فراق نامې په حاشیه کښې دې ته غزل لیکلے دې. چې دوست محمد خان کامل موmند هم په غزلیاتو کښې شمېرلے دې.

"دا غزل "کلیاتِ خوشحال خان خټک" کښې په صفحه ۲۰۵ درج دے."[37]

د خوشحال بابا دا حبسیه قصیدې صرف د قید و بند په حالاتو مشتمل نۀ دي بلکې په دې کښې د پښتونخوا نه واخله تر دهلي پورې حالات قلمبند دي، چې پکښې د خپلو خپلوانو، یارانو دوستانو، امیرانو، بادشاهانو، پښتنو او مغلو، هندوانو او مسلمانانو، یوسفزو او خټکو ستائینه او غندنه شوې ده، د موسم او چارپیرچل، حالات، د وطن ارمان، د خپلو خپلوانو او یارانو جدائي، د خپلخانې او اهل و عیال درد و غم، د ښکار مشغولا او د آزاد ژوند خواهش پکښې بیان شوې دے.

غرض دا چې خوشحال بابا د زنداني قصيدو هر يو شعر د معنا او مطلب درياب دے چې هر قسم در او ګوهر پکښې شته دے. د خوشحال بابا د بيان قوت، د فن خوبۍ او د قصيده ګوئۍ نه داسې بريښي چې د خوشحال بابا په فن کښې هغه ټول خصوصيات ځليږي کوم چې پښتو ادب نيغ په نيغه متاثر کړے دے.

## حوالې

[1]خټک، خوشحال خان، "کليات" مقدمې او حاشيې، دوست محمد خان کامل مهمند، ادارۀ اشاعت سرحد پشاور، دويم چاپ، ۱۹۶۰ء، مخ ۵۴۰

[2]-ياسمين پرويز احمد خان، ډاکټر، "د خوشحال خان خټک د قصيده ګوئۍ خصوصيات"، خوشحال ريويو جلد ۱، پښتو اکېډيمي، پېښور يونيورسټي، ۱۹۸۲ء، مخ ۱۷۱

[3]-خټک، حاجي پوردل خان، "اردو پشتو لغت"، پښتو اکېډيمي پېښور يونيورسټي، مقتدره قومي زبان اسلام آباد، د چاپ کال ۱۹۹۰ء، مخ۱۱۴۳

[4]- اردو دائرۀ المعارف اسلاميه، زير اهتمام دانش ګاه پنجاب.لاهور، د چاپ کال ۱۹۷۸ء، جلد ۲/۱۶، صفحه: ۲۸۵

[5]-مومند، کامل دوست محمد خان، "خوشحال خان خټک سوانح حيات"، شاهين بکس، سپوږمۍ پلازه، جمرود روډ پېښور، دويم چاپ ۲۰۰۶ء، ص ۱۳۹

[6]- انوارالحق، سيد، ډاکټر "منتخباتِ خوشحال خان خټک"، دويم چاپ ۱۹۸۹ء، پښتو اکېډيمي، پېښور يونيورسټي، مخ ، پښتو اکېډيمي، پېښور يونيورسټي، مخ ۳۳

[7]- خټک، خوشحال خان، "فراق نامه"، مقدمه، حاشيه او لټون، همېش خليل، قامي مکتبه پېښور، جون ۱۹۸۳ء، مخ ۴۸

[8]- هميش خليل، حاشيه، ايضاً

[9]- خټک، افضل خان، "تاريخ مرصع"، مقابله تصحيح او نوټونه، دوست محمد خان کامل مومند، يونيورسټي بک اېجنسي پېښور، مئي ۲۰۰۶ء، مخ ۳۲۶

[10]خوشحال خان ختک، تاريخ مرصع ، ص ۶۹۲، بحواله د خوشحال بابا تاريخ گوئي، حسرت، مخ ۱۱۶

[11] ميا سيد رسول رسا په ارمغان خوشحال کښې نهۀ پنځوس قصيدې ترتيب کړے دي او يوه ئې د خان کلان قصيده په نوم په مخ نمبر ۱۰۲۲ ليکلې ده.

[12] ۱۰۷۴ھ

[13]- خټک، خوشحال خان، "کليات"، مقدمه او حاشيې دوست محمد خان کامل مومند، اداره اشاعت سرحد، پشاور، دويم چاپ ۱۹۶۰ء، مخ ۵۶۲-۵۶۳

[14] ډاکټر زبير حسرت " د خوشحال بابا قصيده ګوئي" کښې په مخ نمبر ۹۲ د دې قصيدې څليريشت بېتونه ياد کړې دي خو په کليات او ارمغان کښې د دې شمېر دريشت دے.

[15]-حسرت، محمد زبير، ډاکټر، "د خوشحال بابا تاريخ ګوئي"، د ادبي دوستانو مرکه، مردان، دويم چاپ يکم ستمبر ۲۰۱۰ء، مخ ۹۳

[16] - هميش خليل، "مقدمه"، ديوان اشرف خان هجري، پښتو اکېډيمي، پېښور يونيورسټي، ۲۰۰۱ء، مخ ۸
[17] دا قصيده په کليات خوشحال خان خټک کښې د "ل" په پټۍ کښې د مخ ۵۴۶ نه تر ۵۵۱ پورې په ۶ مخونو مشتمل د
[18] د منت دارو کۀ مرم په کار مې نه دي کۀ علاج لره مې راشي مسيحا هم (کليات خوشحال خان خټک، مخ ۵۷۷)
[19] -حسرت، محمد زبير، ډاکټر، "د خوشحال بابا تاريخ ګوئي"، د ادبي دوستانو مرکه، مردان، دويم چاپ يکم ستمبر ۲۰۱۰ء، مخ ۱۰۲
[20] (کليات خوشحال خان مخ ۱۰۲)
[21] (کليات خوشحال خان مخ ۵۵۰)
[22] (کليات خوشحال خان مخ ۵۵۱)
[23] (کليات خوشحال خان مخ ۵۷۹-۵۸۰)
[24] - مومند، کامل دوست محمد خان، "خوشحال خان خټک سوانح حيات"، شاهين بکس، سپوږمۍ پلازه، جمرود روډ پېښور، دويم چاپ ۲۰۰۶ء، ص ۱۳۵-۱۳۴
[25] دا اووے بادشاه فلانه به خلاص کړم سلامت زن بچه کۀ راولي و هند ته په سرعت
حکم ئې اوکړ امير خان ته وشول کښل زۀ په بند بندي څما کورونه راوستل (ارمغان خوشحال مخ ۷۶۷)
[26] کليات خوشحال خان مخ ۵۷۹
[27] کليات خوشحال خان مخ ۶۱۹-۶۲۱
[28] - حسرت، محمد زبير، ډاکټر، "د خوشحال بابا تاريخ ګوئي"، د ادبي دوستانو مرکه، مردان، دويم چاپ يکم ستمبر ۲۰۱۰ء، مخ ۱۲۱
[29] - کامل، دوست محمد خان، مومند، "حاشيه"، کليات خوشحال، اداره اشاعت سرحد، پشاور، دويم چاپ ۱۹۶۰ء، مخ ۶۱۹
[30] کليات خوشحال خان مخ ۵۶۶
[31] کليات خوشحال خان مخ ۵۶۸
[32] کليات خوشحال خان مخ ۵۶۸
[33] کليات خوشحال مخ ۵۶۶
[34] کليات خوشحال خان مخ ۵۶۸
[35] کليات خوشحال مخ ۵۶
[36] -صميم، محمد آصف، "ګام پر ګام له خوشحال سره"، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، جرمني، د چاپ نېټه، ۱۳۷۸هـ، ۲۰۰۰ م کال، مخ ۱۱
[37] -هميش خليل، "حاشيه"، فراق نامه، قامي مکتبه پېښور، جون ۱۹۸۳ء، مخ۱۷